

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحيم




د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## شپږم ټولگی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.



# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې د برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنټ غړي

**ټولګی:** شپږم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af





## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي



# فهرست





# د نبوي احاديثو مقام

د رسول الله ﷺ وينا، عمل او تقرير ته حديث ويل کېږي.

د پيغمبر ﷺ وينا وحې ده.

د پيغمبر ﷺ پيروي د الله تعالی پيروي ده، الله تعالی فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ [النساء: ٥٩] ژباړه: ای مؤمنانو! د الله او د رسول اطاعت وکړئ.

د کومو کارونو په کولو چې رسول الله ﷺ لاربسوونه کړې هغه ترسره کوو او له کومو کارونو څخه يې چې منع کړې، له هغو څخه ډډه کوو.

الله تعالی په دې اړه فرمايلي دي: ﴿وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا﴾ [الحشر: ٧]

ژباړه: په څه چې پيغمبر ﷺ تاسې ته امر کړی، نو هغه ومنئ او له څه شي څخه يې چې منعه کړي يئ، له هغه منعه شئ.

د قرآن کريم ډېر حکمونه د رسول الله ﷺ په احاديثو کې بيان شوي دي.




۱. زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د حضرت محمد ﷺ ځینې احادیث د بېلګې په ډول بیان کړي.

۲. زده کوونکي دې په خپل ژوند کې له پیغمبر ﷺ څخه د پیروی څو بېلګې ووایي.

۳. د ښوونکي په مرسته د نبوي احادیثو د ځینو کتابونو نومونه واخلي.




۱. حدیث څه ته ویل کېږي؟

۲. الله تعالی موږ ته د رسول الله ﷺ د احادیثو په هکله څه فرمایلي دي؟

۳. آیا د رسول الله ﷺ ویناوو او کړنو دواړو ته حدیث ویل کېږي؟

۴. دا آیت ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ﴾ وژباړئ.




زده کوونکي دې پورتنې دواړه آیتونه حفظ او ژباړه دې زده کړي.

# د احادیثو ډولونه

د پیغمبر ﷺ حدیثونه په درې ډوله دي:

۱- قولي حدیث: د پیغمبر ﷺ ویناوو ته قولي حدیث ویل کیږي،

لکه: رسول الله ﷺ فرمایلي دي: «الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ» رواه البخارى.

ژباړه: مسلمان هغه څوک دی، چې مسلمانان یې د ژبې او لاس له ضرر څخه په امن وي.

۲- فعلي حدیث: د رسول الله ﷺ کړنو ته فعلي حدیث ویل کیږي،

لکه: «صَلَّى رَسُولُ اللهِ ﷺ، حِينَ سَافَرَ رَكْعَتَيْنِ ، وَحِينَ أَقَامَ أَرْبَعًا»

ژباړه: رسول الله ﷺ په سفر کې دوه رکعته لمونځ کاوه کله چې به مقیم وو، بیا به یې څلور رکعته لمونځ کاوه.

۳- تقریري حدیث: یو صحابي چې کوم کار د رسول الله ﷺ په وړاندې کړی وي او رسول الله ﷺ هغه کار بد نه وي ګڼلی، دې ته تقریري حدیث ویل کیږي، لکه: په نبوي مسجد کې د حبشیانو لوبې چې د نیزو په وهلو سره یې کولې.



## فعالیتونه

زده کوونکي دې په لاندې حدیثونو کې د وینا، عمل او تقریر حدیثونه په ګوته کړي:

۱. یو سړي له رسول الله ﷺ څخه وپوښتل: کوم مسلمان غوره دی؟ پیغمبر ﷺ ورته وفرمایل: هغه څوک غوره دی چې مسلمانان یې د ژبې او لاس له ضرر نه په امان وي. رواه مسلم .

۲. رسول الله ﷺ د لوی اختر په ورځ لومړی لمونځ وکړ، بیا یې خطبه وویله، ورپسې یې څاروی حلال کړ. متفق علیه .



## پوښتنې

۱. د پیغمبر ﷺ حدیثونه په څو ډوله دي؟

۲. قولي حدیث تعریف کړئ.

۳. فعلي حدیث تعریف کړئ.

۴. تقریري حدیث تعریف کړئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# شفاعت

شفاعت سپارښتنې ته وايي.

الله ﷻ د قیامت په ورځ غوره خلکو ته د شفاعت اجازه  ورکوي.

د الله ﷻ له اجازې پرته هېڅوک شفاعت نشي کولای.

نېک خلک به د مسلمانو ګناهګارانو شفاعت کوي.

شفاعت د ګناه د بښلو او جنت ته د تللو لپاره کېږي.

هر پیغمبر به د خپل امت شفاعت کوي.

رسول الله ﷺ به لومړی شفاعت کوي.

د دې امت غوره خلک د شفاعت حق لري.

د قرآن کریم قاري به د خپلې کورنۍ د لسو غړو شفاعت کوي.

شهید  د ۷۰ تنو  شفاعت کوي.

نېک اعمال د مسلمان شفاعت کوي.

قرآن کریم د خپل لوستونکي شفاعت کوي.






۱- زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د شفاعت په اړه یو له بل سره خبرې وکړي.

۲- د قرآن کریم قاري ته ولې د شفاعت حق ورکول کیږي؟ زده کوونکي دې په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړي.

۳- په دنیا کې د نیکو خلکو په هکله سپارښتنه څنګه ده؟ په دې هکله د ښوونکي معلومات له ځان سره شریک کړئ.




۱- شفاعت څه ته ویل کیږي؟

۲- پیغمبران به د چا شفاعت کوي؟

۳- شهید د څو کسانو شفاعت کولای شي؟

۴- قرآن کریم د چا شفاعت کوي؟




زده کوونکي دې د کورنۍ له غړو سره د شفاعت په اړه خبرې وکړي.

# د اصحابو مقام

اصحاب د صحابي جمع ده.

صحابي: هغه چا ته ويل کېږي، چې پيغمبر ﷺ يې ليدلی وي، په هغه يې ايمان راوړی وي او د ايمان په حالت کې وفات شوی وي.

اصحابو کرامو رضي الله عنهم له رسول الله ﷺ سره د دين په خپرولو کې ډېر زيارونه ګاللي او پدې لار کې يې هر ډول مالي او ځاني قرباني ورکړي دي.

اصحاب رضی الله عنهم د اسلامي امت تر ټولو غوره خلک دي.

د رسول الله ﷺ اصحاب د هدايت مشالونه دي، د هغوی په پيروۍ کې مسلمانان سمه لار مومي.

رسول الله ﷺ موږ ته له اصحابو سره د مينې او اخلاص لارښوونه کړې ده.

موږ ټولو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته درناوی لرو.

اصحابو ته بد ويل او د هغوی توهين کول لويه ګناه ده.

مشهور صحابه، لکه: حضرت ابوبکر صديق، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت زبير، بي بي خديجة الکبری، بي بي عايشه او بي بي فاطمة الزهرا رضی الله تعالی عنهم او داسې نور دي.





## فعالیتونه

۱- له رسول الله ﷺ څخه د اسلام دین چا زده کړ؟ او بیا یې نورې نړۍ ته څنګه ورساوه؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

۲- هغه کوم اصحاب دي چې په دنیا کې پرې د جنت زیرى شوى؟ نومونه یې واخلئ.

۳- هغه کوم اصحاب دي چې تر ټولو یې لومړی اسلام راوړی دی؟ په دې هکله د ښوونکي معلومات له ځان سره شریک کړئ.



## پوښتنې

۱- اصحاب چا ته ویل کیږي؟

۲- رسول الله ﷺ خپل امت ته د صحابه وو په هکله د څه شي سپارښتنه کړې ده؟

۳- د څو مشهورو اصحابو نومونه واخلئ.



## کورنی دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# قسم خوړل

مسلمان باید له بې ځایه قسم خوړلو څخه ډډه وکړي.

بې ځایه قسم خوړل د منافق نښه ده.

که چیرې مسلمان قسم خوړلو ته اړ شي، نو د الله تعالی په نومونو او یا صفتونو دې قسم وکړي، په دې هکله رسول الله ﷺ فرمایي: «مَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللهِ أَوْ لِيَصْمُتْ» رواه البخاري

ژباړه: که څوک قسم کوي، نو په الله تعالی دې قسم وکړي او یا دې پټه خوله پاتې شي.

د قسم له الفاظو څخه ځینې یې دا دي:

۱- وَاللهِ. ۲- بِاللهِ. ۳- تَاللهِ. ۴- بِعِزَّةِ اللهِ. ۵- بِكَلَامِ اللهِ همدارنګه په قرآن کریم هم قسم خوړل روا دي.

د اولاد په سر، په زیارت، آسمان، مسجد او داسې نورو شیانو قسم خوړل، لویه ګناه ده او پیغمبر ﷺ موږ ترې منع کړي یو.



## فعالیتونه

۱- د ښوونکي په مرسته ځینې هغه حالتونه بیان کړئ چې خلک پکې بې ځایه قسم کوي.

۲- آیا خپل ملګري سره په نه خبرو کولو قسم کول روا دي ؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

۳- د لوست حدیث له یادو ووایئ.



## پوښتنې

۱- بې ځایه قسم خوړل د څه شي نښه ده؟

۲- که مسلمان قسم خوړلو ته اړ شي، نو په څه شي به قسم خوري؟

۳- رسول الله ﷺ د قسم خوړلو په اړه څه فرمایلي دي؟

۴- آیا د الله تعالی له نومونو او صفتونو پرته په نورو شیانو قسم خوړل ګناه ده؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د قسم ډولونه

قسم په درې ډوله دی:

۱- **لغوه قسم**: بې له قصده قسم خوړلو ته لغوه قسم ویل کیږي، لکه ځینې خلک چې د عادت له مخې په خبرو کې وايي: والله داسې وو او قسم کولو ته یې اراده نه وي.

په لغوه قسم کې ګناه او کفاره نه لازمیږي.

۲- **منعقده قسم**: په راتلونکې زمانه کې د یو کار په کولو او یا نه کولو باندې قسم خوړلو ته منعقده قسم ویل کیږي.

که څوک وروسته په خپل قسم کې پاتې نه شو، بلکې د خپل قسم خلاف کار یې وکړ، نو په ده باندې کفاره لازمیږي.

۳- **غموس قسم**: قصداً په دروغو د تېر وخت د یو کار په کېدلو او یا نه کېدلو قسم خوړلو ته غموس قسم ویل کیږي.

لکه: څوک ښه خبر وي چې دا کار نه دی شوی، خو بیا هم قصداً په دروغو قسم خوري چې دا کار شوی دی.

غموس قسم انسان دوزخ ته داخلوي.

غموس قسم لویه ګناه ده، کفاره نه لري، بلکې انسان به الله تعالی ته تل ژړا او زاري کوي، څو یې دا ګناه ورته وبښي.



## فعالیتونه

۱- په نوبت سره د لغوه، منعقده او غموس قسمونو بېلګې بيان کړئ.

۲- د چا پر حق سترګې پټول او قسم پرې خوړل. دا کوم ډول قسم دی؟ په دې هکله خبرې وکړئ.



## پوښتنې

۱- قسم په څو ډوله دی؟

۲- لغوه قسم کوم دی؟

۳- منعقده قسم بيان کړئ.

۴- غموس قسم تعریف کړئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د قسم ډولونه په خپلو کتابچو کې وليکي.

# شرک

شرک له ټولو ګناهونو څخه لویه ګناه ده.

الله تعالی مشرک ته بښنه نه کوي، الله تعالی پدې اړه فرمایي: ﴿إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ﴾ [النساء : ٤٨]

ژباړه: الله جل جلاله یوازې شرك نه بښي، له شرک پرته نورې ګناوې چې چا ته یې خوښه شي، وربښي یې.

موږ باید له شرکي اعمالو څخه ډډه وکړو، لکه:

١- له الله تعالی پرته د بل چا عبادت کول،

٢- له الله تعالی سره په ذات او صفاتو کې څوک شریک ګڼل،

٣- ساحر او کوډګرو ته تلل او باور پرې کول،

۴- له الله تعالی پرته بل چا ته بې له اسبابو د غیبو علم ثابتول،

۵- په نیکو عملونو کې ریا کول،

٦- له اسبابو پرته له مخلوق څخه مرسته غوښتل.

که چیرې مشرک له شرک څخه توبه وکړي، الله تعالی یې توبه قبلوي.



## فعالیتونه

بحث پرې وکړئ:

۱-کائنات چا پیدا کړي؟ چا لمر، ځمکه او ستوري په هوا کې درولي؟ بارانونه څوک وروي؟ د عبادت لایق څوک دی؟.

۲- له اسبابو پرته له مخلوق څخه د مرستې غوښتلو څو مثالونه ووایئ.



## پوښتنې

۱- آیا شرک تر ټولو لویه گناه ده؟

۲- څوک چې مشرک مړ شي، آیا الله تعالی هغه ته بښنه کوي؟

۳- کوم عملونه شرک بلل کیږي؟

۴- آیا په ژوند کې د مشرک توبه قبلیږي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنی لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# د شرک ډولونه

شرک په دوه ډوله دی.

۱- اکبر (لوی) شرک.

۲- اصغر (کوچنی) شرک.

له الله تعالی سره په عبادت کې شریک پیدا کولو ته اکبر (لوی) شرک ویل کیږي.

اکبر شرک انسان له اسلامه باسي او د تل لپاره به په دوزخ کې وي.

اصغر (کوچنی) شرک هغه گناهونه دي چې په احادیثو کې د شرک نسبت ورته شوی وي، تر څو خلک ترې ځان وساتي.

اصغر شرک لویه گناه ده، خو انسان له اسلامه نه باسي.

اصغر شرک، لکه: له الله تعالی پرته پر بل شي قسم خوړل او ریا کول.




۱- د ښوونکي په مرسته په نوبت سره د اکبر او اصغر شرک څو مثالونه بیان کړئ.

۲- ریا ولې اصغر شرک بلل کیږي؟ په دې هکله د ښوونکي معلومات له ځان شریک کړئ.




۱. شرک په څو ډوله دی؟

۲. اکبر (لوی) شرک کوم دی؟

۳. اصغر (کوچنی) شرک کوم دی؟

۴. آیا لوی شرک مسلمان له اسلام څخه باسي؟

۵. آیا ریا ته شرک ویل کېدای شي؟




زده کوونکي دې پورتنۍ لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# ریا

ځان ښودنې ته ریا وايي، موږ ښه کارونه د الله ﷻ لپاره کوو.

په ریا کارۍ کې ثواب نشته، ځکه ریاکوونکی د الله ﷻ رضا نه غواړي.

اخلاص د نیک عمل د قبلیدو شرط دی، رسول الله ﷺ فرمايلي دي:

«إِنَّمَا الأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ» رواه البخاري

ژباړه: د عملونو ثواب په نیت پورې اړه لري.

ریا کول لویه ګناه ده، رسول الله ﷺ فرمايي: ځان ښودنه پټ شرک دی.

د خلکو پر وړاندې د فرض عملونو تر سره کول ریا نه ګڼل کیږي.

موږ له ریا کارۍ نه ځان ژغورو.




۱. د ښوونکي په مرسته د ریا په اړه یوله بل سره خبرې وکړئ.

۲. که څوک د دې لپاره صدقه ورکوي چې نوم يې په خلکو کې خپور شي، آيا د ده صدقه قبلیږي؟ په دې هکله په خپلو کې خبرې وکړئ.

۳. د ریا ضد څه شی دی؟ په گوته يې کړئ:

(رښتیا، اخلاص، قناعت)




۱. ریا څه ته ویل کیږي؟

۲. آیا ریا لویه گناه ده؟

۳. رسول الله ﷺ د ریا په هکله څه فرمایلي دي؟




زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د ریا په اړه خبرې وکړي.

# شرعي حکمونه (۱)

د اسلام دین موږ ته د ژوند په ټولو چارو کې لارښوونه کړې ده، هغه څه چې زموږ په ګټه دي، موږ ته یې د هغو د سرته رسولو امر کړی او یا یې روا کړي دي او هغه څه چې زموږ په زیان دي، له هغو څخه یې منع کړي یو.

د شریعت حکمونه په دوه ډوله دي:

۱. **اوامر:**

اوامر: هغو حکمونو ته وایي چې الله تعالی یې په سرته رسولو امر کړی دی.

۲. **نواهي:**

نواهي: هغو حکمونو ته وایي چې شریعت ترې منع کړې ده، کول یې ګناه او الله تعالی پرې ناراضه کېږي.

اوامر د اهمیت له مخې په لاندې برخو ویشل کېږي:

**فرض:** هغه حکم ته ویل کېږي چې مونږ یې په سرته رسولو مکلف یو، کول یې ثواب، پرېښودل یې ګناه ده او انکار ترې کفر دی، لکه: پنځه وخته فرض لمونځونه او فرضي روژه.

**واجب:** د فرضو په څېر، کول یې حتمي او ثواب لري، پرېښودل یې ګناه ده او منکر یې فاسق بلل کېږي، لکه: د اختر لمونځ، د وترو لمونځ، د قنوت دعا ویل.

**سنت**: هغه حکم ته ویل کیږي چې کول یې ثواب او پرېښودل یې ملامتي ده، لکه: د ماسپښین شپږ رکعته سنت لمونځ، څلور له فرضو مخکې او دوه وروسته.

**مستحب**: هغه عمل ته ویل کیږي چې کول یې ثواب لري او پرېښودل یې نه ګناه او نه ملامتي لري.

**مباح**: هغه عمل ته ویل کیږي چې په کولو او پرېښودلو کې یې ګناه نه وي، لکه: ښکار کول.



**فعالیتونه**

۱. د ښوونکي په مرسته د فرضو، سنتو، مستحبو او مباحو څو نور مثالونه ووایئ.

۲. د لاندنیو چارو حکم ووایئ:

(اسراف، حج، غیبت، زکات، غلا، سلام اچول)



**پوښتنې**

۱. شرعي حکمونه په څو ډوله دي؟

۲. فرض کوم حکم ته ویل کیږي ؟

۳. سنت او مستحب کوم حکمونه دي؟

۴. مباح څه ته ویل کیږي؟



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د یاد لوست متن په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# شرعي حكمونه (۲)

د اسلام دين موږ له هغو کارونو څخه منع کړي يو چې کول يې زموږ په زيان دي، علماوو ناروا کارونه په دوو برخو ويشلي دي:

۱- **حرام**: هغه عمل ته ويل کېږي چې پرېښودل يې فرض وي، لکه: قتل، غلا، غيبت او داسې نور.

۲- **مکروه**: هغه عمل ته وايي چې په شريعت کې بد ګڼل شوی وي.

مکروه په دوه ډوله دي:

**الف: تحريمي مکروه**: هغه عمل ته ويل کېږي چې له سرته رسولو څخه يې شريعت منع کړې وي، کول يې ګناه لري، خو له حرام څخه را ښکته وي، لکه: د اودس ماتي په وخت کې قبلې ته مخ کول او په لمانځه کې ويښتان سمول.

**ب: تنزيهي مکروه**: هغه عمل ته ويل کېږي چې پرېښودل يې غوره وي، په کولو کې يې ګناه نه وي، لکه: دويم رکعت له لومړي رکعت څخه اوږدول.

## فعالیتونه

۱ . زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي، يوه ډله دې د حرامو پنځه مثالونه ووايي، دويمه ډله دې د مکروهو پنځه مثالونه ووايي.

۲ . زده کوونکي دې ووايي چې حرام له مکروه څخه څه توپير لري؟ په دې هکله دې خبرې وکړي.

## پوښتنې

۱ . حرام څه ته ويل کيږي؟ يو مثال يې ووايئ.

۲ . آيا تحريمي مکروه پيژنئ؟ دوه مثالونه يې ووايئ.

۳ . تنزيهي مکروه څه ته ويل کيږي؟ څو مثالونه يې په لمانځه کې ذکر کړئ.

۴ . د حرامو او فرضو ترمنځ څه توپير دی؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوست متن په خپلو کتابچو کې وليکي.

# د غسل فرضونه

د ټول بدن پرمینځلو ته غسل ویل کېږي.

**د غسل فرضونه:**

په غسل کې درې فرضونه دي:

۱. **مضمضه**: په خوله کې د اوبو اچولو او غړغړه کولو ته مضمضه ویل کېږي.

۲. **استنشاق**: په پوزه کې د اوبو اچولو او بیرته لرې کولو ته یې استنشاق ویل کېږي.

۳. **د ټول بدن پرېمینځل**: پداسې توګه چې په سر اوبه اچوي او ټول بدن وینځي، چې په ټولو اندامونو اوبه تېرې شي او د بدن هېڅ برخه وچه پاتې نشي.

**یادونه**: د ښځو لپاره د وېښتانو بیخ پرېمینځل کفایت کوي، د کوڅیو پرانیستل ضرور نه دي.

## فعالیتونه

۱. د ښوونکي په مرسته د غسل د ګټو په هکله بحث وکړئ.

۲. د غسل د آدابو په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

## پوښتنې

۱. غسل تعریف کړئ.

۲. په غسل کې څو فرضونه دي؟

۳. مضمضه او استنشاق څه ته وايي؟

۴. آیا په غسل کې د ښځو لپاره د کوڅیو پرانیستل فرض دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوست پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# د غسل موجبات

**هغه څه چې له کبله یې پر مسلمان غسل لازمېږي، د غسل موجبات بلل کېږي.**

**غسل په دوه ډوله دی:**

الف: فرض غسل . ب: سنت غسل.

**الف: فرض غسل:** په هر عاقل او بالغ مسلمان باندې په لاندې حالتونو کې غسل فرض کېږي:

- **احتلام:** یعنې په خوب کې غسل لازمېدل،
- **جماع:** د ښځې او خاوند کور والی او مباشرت،
- **حیض:** د ښځې میاشتنۍ ناروغي،
- **نفاس:** د ماشوم له زیږېدنې وروسته د مور ناروغي،

**ب: سنت غسل:** په لاندې وختونو کې غسل سنت دی:

۱. د جمعې د لمانځه لپاره غسل کول،

۲. د اخترونو د لمنځونو لپاره غسل کول،

۳. له احرام تړلو څخه مخکې غسل کول.




بحث پرې وکړئ:

١- د اسلام دین پاکۍ ته څومره ارزښت ورکوي؟

٢- که فرض غسل ونه شي، آیا لمونځ کیږي؟

٣- د غسل د ګټو په هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.




١. غسل په څو ډوله دی؟ بیان یې کړئ .

٢. په کومو حالتونو کې غسل فرض کیږي؟

٣. په کومو حالتونو کې غسل سنت دی؟




زده کوونکي دې د لوست پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي .

# روژه

د روژې تعریف: له سپیده داغ (صبح صادق) څخه تر لمر پریوتو پورې له خوراک، څښاک او جماع څخه د عبادت په نیت ځان  ساتلو ته روژه وايي.

روژه د اسلام  له پنځو بناوو څخه ده.

رسول الله ﷺ د روژې په هکله  داسې فرمايلي دي:

( د روژه نیوونکي لپاره دوې خوښۍ دي: یوه خوښي يې د روژه ماتي او بله يې د قیامت په ورځ له الله تعالی سره د ملاقات پر وخت) رواه مسلم .

**د روژې ګټې:**

- د روژې په نیولو سره د مسلمان ایمان غښتلی کیږي.
- روژه د مسلمان سپر دی، له دوزخ څخه يې ژغوري.
- روژه نیول د انسان روغتیا ته ډیرې ګټې رسوي.
- د روژې په نیولو سره د مسلمان په زړه کې ترحم پیدا کیږي.
- روژه انسان ته د صبر او امانتدارۍ درس ورکوي.



## فعالیتونه

۱. د روژې د پیل او پای د وختونو په هکله بحث وکړئ.

۲. کوم شیان د روژې ماتوونکي دي؟ په دې اړه په خپلو منځو کې مباحثه وکړئ.



## پوښتنې

۱. روژه څه ته ویل کیږي ؟

۲. روژه نیول څه ګټې لري ؟ بیان یې کړئ.

۳. روژه نیول روغتیا ته څه ګټه رسوي ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د روژې د ګټو په هکله یوه مقاله ولیکي.

# د روژې فرضیت

د رمضان میاشتې روژه نیول پر هر عاقل، بالغ، مسلمان باندې فرض دي.

د فرضیت دلیل:

الله تعالی فرمایلي دي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ﴾.البقره (۱۸۳) آیت.

ژباړه: ای مؤمنانو! پر تاسو روژه فرض کړای شوې ده، لکه چې له تاسو څخه په مخکینیو خلکو فرض وه، د دې لپاره چې پرهیز گار شئ.

د رمضان د میاشتې فضیلتونه:

- په رمضان میاشت کې قرآن کریم نازل شوی دی.
- د رمضان د میاشتې په هکله رسول الله ﷺ داسې فرمایلي دي:

د رمضان میاشتې په راتلو سره د جنت دروازې پرانیستل کیږي. د دوزخ دروازې بندیږي او لوی شیطانان تړل کیږي.

دا میاشت د صبر میاشت ده چې بدل یې جنت دی.

دا میاشت د برکت میاشت ده، د مسلمان رزق پکې زیاتیږي، لومړۍ لسیزه یې د رحمت، دویمه لسیزه یې د بښنې او وروستۍ لسیزه یې له دوزخ څخه د خلاصون وسیله ده.



## فعالیتونه

۱- روژه ولې د صبر مياشت ده؟ بحث پرې وکړئ.

۲- د روژې لومړۍ لسيزه د رحمت، دويمه يې د بښنې او دريمه يې له دوزخ څخه د خلاصون وسيله ده، دا عبارت شرحه کړئ.



## پوښتنې

۱. روژه پر چا فرض ده؟

۲. د روژې د فرضيت دليل ووايئ.

۳. د لوست د آيت ژباړه وليکئ؟

۴. د روژې د مياشتې فضيلتونه ووايئ.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د رمضان مياشتې د فضايلو په هکله مقاله وليکي.

# د روژې ډولونه

روژه د حکم له پلوه په لاندې ډولونو ویشل شوې ده:

۱- فرض ۲ - واجب ۳ - سنت ۴- ناروا.

**۱- فرض روژه،** لکه: د رمضان د میاشتې او د نذر روژې نیول.

**۲- واجب روژه،** لکه: د نفلي روژې له فاسدېدو وروسته قضايي راوړل.

**۳- سنت روژه،** په لاندې وختونو کې روژه نیول سنت دي:

- د محرم د میاشتې د نهمې او لسمې ورځې روژه نیول،
- د شوال د میاشتې شپږ ورځې روژه نیول،
- د عرفې د ورځې روژه نیول.،
- په هره اوونۍ کې د دوشنبې او پنجشنبې د ورځو روژه نیول،
- د هرې قمري میاشتې د دیارلسمې، څوارلسمې او پنځلسمې ورځې روژه نیول.

**۴ - ناروا روژه،** لکه د شک د ورځې روژه نیول چې د رمضان میاشت ثابته شوې نه وي او خلک یې د فرض روژې په نیت ونیسي، داسې روژه نیول ناروا او نیوونکي یې ګناه ګار دي.

- همدا راز د دواړو اخترونو په ورځو کې روژه نیول ناروا دي.




۱. د ښوونکي په مرسته هغه ورځې چې روژه نیول پکې ثواب لري، په ګوته کړئ.

۲. د هغو ورځو په هکله مباحثه وکړئ چې روژه نیول پکې ناروا دي.




۱. روژه د حکم له پلوه په څو ډوله ده؟

۲. د فرض روژې یو مثال ووایاست.

۳. په کومو ورځو کې روژه نیول سنت دي؟

۴. په کومو وختونو کې روژه نیول ناروا دي؟




زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د شوال میاشتې او عرفې ورځې د روژې نیولو فضایل په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې په ټولګي کې ولولي.

# د روژې فاسدوونکي

هر هغه څه چې روژه ورباندې ماتېږي، د روژې فاسدوونکي ورته ویل کېږي.

د روژې فاسدوونکي په لاندې ډول دي:

۱. **په قصد سره خوراک او څښاک کول**: په ورځ کې په قصد سره خوراک او څښاک کولو سره روژه ماتېږي، خو که څوک په هېره سره څه وخوري یا وڅښي، روژه یې نه فاسدېږي.

۲. **په قصد سره قی کول**: که څوک روژه نیوونکی په ډکه خوله قصداً قی وکړي، روژه یې فاسدېږي، خو که د ناروغۍ له کبله یې قی وکړ، روژه یې نه فاسدېږي.

۳. **حیض**: د ښځې د میاشتنۍ ناروغۍ په را تللو سره روژه فاسدېږي، ښځو ته جواز نلري چې د حیض پر مهال روژه ونیسي.

۴. **نفاس**: که ښځه د روژې په حالت کې ماشوم وزېږوي، روژه یې فاسدېږي او تر هاکلې مودې پورې روژه نیول هم ورته روا نه دي.

۵. **جماع (کور والی)**: په روژه کې د ورځې د ښځې او خاوند په کوروالي سره روژه فاسدېږي.

## فعالیتونه

۱. د روژې د فاسدوونکو په هکله په خپلو منځو کې مباحثه وکړئ.

۲. د ناروغۍ په وخت په پیچکاري کولو روژه نه فاسدیږي. په دې هکله په خپلو منځو کې بحث وکړئ.

## پوښتنې

۱. د روژې فاسدوونکي څه ته وایي؟

۲. آیا د هیرې په حالت کې د خوراک له امله روژه ماتیږي؟

۳. قی په کوم حالت کې روژه ماتوي؟

۴. آیا ښځې ته د حیض او یا نفاس په حالت کې روژه نیول روا دي؟

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# تراويح

د روژې په مياشت کې شل رکعته تراويح کول مؤکد سنت دي.

د ماخوستن د فرض لمانځه وروسته دوه دوه رکعته تراويح اداء کېږي.

په جماعت سره د تراويح لمونځ کول ثواب لري.

رسول الله ﷺ او صحابه وو رضي الله عنهم تراويح په جماعت سره اداء کړي دي.

حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په وخت کې مسلمانانو ته د شل رکعته تراويحو کولو لارښوونه وکړه.

په تراويحو کې امام په جهر سره قرأت لولي.

په تراويحو کې د ټول قرآن کريم لوستل مستحب دي.

په يوازې ډول (ځانته) تروايح کول هم روا دي.



## فعالیتونه

۱. آیا کله مو د تراویح په لمانځه کې ګډون کړئ؟ له نورو لمونځونو سره څه توپیر لري؟

۲. امام باید په تراویحو کې قرآن کریم څنګه ولولي؟ په دې هکله د ښوونکي معلومات له ځان سره شریک کړئ.



## پوښتنې

۱. تراویح په کوم وخت کې اداء کېږي؟

۲. تراویح څنګه اداء کېږي؟

۳. د تراویحو لمونځ څه حکم لري؟

۴. حضرت عمر رضي الله عنه د څو رکعتونو تراویحو لارښوونه کړې ده؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# اعتکاف

اعتکاف په لغت کې په يو ځای کې پاتې کېدو ته وايي.
په اصطلاح کې په جومات کې د عبادت په نيت وخت تيرولو ته اعتکاف ويل کيږي.
د رمضان مياشتې په وروستيو لسو ورځو کې اعتکاف کول کفايي سنت دي. رسول الله ﷺ به هر کال د روژې مياشتې په وروستېو لسو ورځو کې اعتکاف کاوه.

**د اعتکاف شرطونه:**

۱. اسلام: اعتکاف کوونکی بايد مسلمان وي.
۲. عقل: اعتکاف کوونکی بايد عاقل وي، د ليوني اعتکاف نه صحيح کيږي.
۳. مسجد: اعتکاف بايد په مسجد کې ترسره شي، خو ښځې کولای شي چې په خپل کور کې په ځانګړي ځای کې اعتکاف وکړي.
۴. د اعتکاف نيت کول.
۵. له حيض او نفاس څخه پاکوالی.

**د اعتکاف په هکله ځينې مسايل:**

- اعتکاف کوونکی کولای شي چې په لاندې حالتونو کې له جومات څخه ووځي:

۱. د قضای حاجت لپاره.

۲. د جمعې د لمانځه د ادا کولو لپاره.

۳. د ضرورت لپاره، لکه: د خوراک، څښاک او درملنې لپاره چې بله چاره یې نه وي.




۱. په نوبت سره د اعتکاف تعریف او شرطونه په یادو ووایئ.

۲. په اعتکاف کې څه کول په کار دي؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.




۱. اعتکاف څه ته وایي؟

۲. اعتکاف څه حکم لري؟

۳. رسول الله ﷺ په کومو ورځو کې اعتکاف کاوه؟

۴. د اعتکاف د صحت لپاره کوم شیان شرط دي؟

۵. په کوم وخت کې اعتکاف کوونکی له مسجد څخه وتلای شي؟




زده کوونکي دې د اعتکاف شرطونه په خپل تعبیر په کتابچو کې ولیکي.

# د فطر صدقه

د کوچني اختر د لومړۍ ورځې سهار له را ختلو سره سم د فطر صدقه واجبېږي، خو له دې نه مخکې د روژې په را رسېدلو سره يې هم ادا کول روا دي.

رسول الله ﷺ د فطر د صدقې (سرسايې) په هکله فرمايلي دي: د فطر صدقه د روژه نيونکي لپاره له ګناهونو څخه پاکي او د مسکينانو لپاره خوراک دی.

**د فطر د صدقې اندازه:**

- نيمه صاع غنم: چې له يوې کيلو او اته سوه ګرامو سره برابره ده.
- همدا راز د پورتني مقدار قيمت په افغانيو هم ورکول کېدای شي.

**د فطر د صدقې شرطونه:**

صدقه ورکوونکی بايد، مسلمان، آزاد او غني (د نصاب مالک) وي.

پلار به له ځان او نورو نفقه خورو، لکه: ښځې او اولادونو څخه صدقه ورکوي.




۱ . د خپلې کورنۍ د غړو د سرسایې اندازه معلومه کړئ. په دې هکله خبرې وکړئ .

۲ . ستاسې د کورنۍ مشر د فطر صدقه چا ته ورکوي؟ بیان یې کړئ.

۳ . د فطر صدقه په کوم وخت کې ورکول کیږي؟ بحث پرې وکړئ.




۱ . د فطر صدقه کله واجبیږي؟

۲ . د فطر صدقې په هکله پیغمبر ﷺ څه فرمایلي دي ؟

۳ . د فطر د صدقې مقدار ووایئ.

۴ . د فطر صدقه پر چا واجبیږي؟

۵ . آیا له کوچنیانو څخه د فطر صدقه ورکول کیږي؟




زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# زکات

زکات د اسلام مهم رکن دی چې د هجرت په دویم کال فرض شوی دی.

زکات په لغت کې پاکوالي او زیادت ته وایي او په اصطلاح کې هغه ټاکلې اندازه مال دی چې د شریعت په ښوونه یې غنیان، اړو خلکو ته ورکوي.

الله تعالی مسلمانانو ته د زکات ورکولو حکم کوي: ﴿وَآتُوا الزَّكَاةَ﴾

ژباړه: او زکات ورکړئ.

**د زکات د فرضیت شرطونه:**

په یوه مسلمان باندې هغه وخت زکات فرض کېږي چې لاندې شرطونه ولري:

۱. زکات ورکوونکی باید عاقل او بالغ وي.
۲. مال یې باید د نصاب کچې ته رسېدلی وي.
۳. مال به یې له بنسټیزو اړتیاوو، لکه: کور، سوارلۍ او کالیوځخه اضافه وي.
۴. د چا پور به پرې نه وي.
۵. پر مال به یې یوکال تیر شوی وي، پرته له مېوو او غلو ځخه چې په هغوکې د کال تیریدل شرط نه دي.

د زکات ورکولو ګټې:

- زکات ورکوونکی په زکات ورکولو سره خپل مال پاکوي او په پاتې مال کې يې الله تعالی برکت اچوي.
- زکات ورکول له فقر سره مبارزه او له اړو خلکو سره مرسته ده.
- زکات ورکوونکی د اړو خلکو دعا تر لاسه کوي.
- په زکات ورکولو سره د مسلمانانو په منځ کې مینه او محبت زیاتیږي.




۱. د زکات د ګټو په هکله بحث وکړئ .
۲. په زکات ورکولو سره د مسلمان مال پاکیږي. په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ .
۳. د زکات او صدقې تر منځ شته توپیرونه بیان کړئ.




۱. زکات په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.
۲. څه وخت په یوه مسلمان زکات ورکول فرض کیږي؟
۳. زکات ورکول څه ګټې لري؟




زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د زکات د ګټو په هکله لنډه مقاله ولیکي.

# د زکات نصاب

**نصاب**: د مال هغې ټاکلې اندازې ته وايي چې د شريعت له مخې زکات پکې فرض کيږي.

که یو شخص له یوه کال راهیسي د ۵۹۵ ګرامو سپینو زرو مالک وي او له اړتیاوو څخه یې دا مال زیات وي، نو دا شخص باید له هرو څلوېښتو ګرامو څخه یو ګرام سپین زر او یا یې قیمت (پیسې) زکات ورکړي.

هغه مالونه چې زکات ترې ورکول کیږي، په لاندې ډول دي:

۱. سپین او سره زر او اوسنۍ پیسې.

۲. معدنونه،

۳. د تجارت توکي،

۴. مېوې او غلې،

۵. خاروي.

**د سپینو او سرو زرو نصاب:**



**الف: سپین زر:** کله چې سپین زر دوه سوه درهمو او یا (۵۹۵) گرامو ته ورسیږي، ورسره د تېر لوست شرطونه پوره کړي، زکات پکې فرض کیږي.

**ب: سره زر:** د سرو زرو نصاب (۲۰) مثقاله دی چې یو مثقال (۴،۲۵) گرامه وزن لري، نو (۲۰) مثقاله سره زر (۸۵) گرامه کیږي.

که څوک د (۸۵) گرامو په اندازه سره زر ولري، کال پرې تیر شوی وي او له بنستیزو اړتیاوو یې زیات وي، نو باید له هرو څلوېښتو گرامو څخه یو گرام سره زر او یا یې قیمت زکات ورکړي.

**یادونه:** په اوسنیو پیسو کې هم د سپینو زرو د نصاب له مخې زکات

ورکول کیږي، نو که چیرې یو شخص د (۵۹۵) گرامو د قیمت په اندازه پیسې ولري، په ده باندې زکات لازمیږي.

زکات باید څومره ورکړل شي؟

له سپینو زرو، سرو زرو او پیسو څخه دوه نیم سلنه (له هرو څلویښتو واحدونو یو واحد) زکات ورکول کیږي.

### فعالیتونه

۱. زده کوونکې دې دوې ډلې شي، په ترتیب سره دې یوه ډله د لوست په هکله یو سوال مطرح کړي او بله ډله دې ځواب ووایي.

۲. اوس مهال د (۵۹۵) گرامه سپینو زرو قیمت څومره افغانۍ کیږي؟ په دې هکله له ښوونکي څخه مرسته وغواړئ.




۱. نصاب څه ته وايي؟

۲. په کومو مالونو کې زکات فرض کیږي؟

۳. د سپینو زرو نصاب څومره دی؟

۴. د سرو زرو نصاب څومره دی؟

۵. له پیسو څخه څنګه زکات ورکول کېږي؟




لاندنیو پوښتنو ته په ځواب ورکولو سره یوه مقاله ولیکئ چې تر اتو کرښو کمه نه وي:

۱- زکات ولې یوازې پر غنیانو فرض دی؟

۲- زکات ولې یوازې اړو خلکو ته ورکول کېږي؟

۳- زکات په ټولنه کې څنګه د خواخوږۍ او یووالي احساس رامنځته کوي؟

# د غلو، دانو او مېوو زکات







د ځمکې په حاصلاتو او مېووکې د زکات ورکولو لپاره نصاب او د کال تیریدل شرط نه دي، کله چې فصل را ټول شي، که زیات او یا کم وي، باید زکات ترینه ورکړل شي.

ځمکه د حاصلاتو له مخې په دوه ډوله ده:

**لومړی ډول:**

هغه ځمکې چې د ارهټ یا ماشین په واسطه اوبه کیږي، له حاصلاتو څخه یې شلمه برخه زکات ورکول کیږي. د بیلگې په ډول له شلو منو غنمو څخه یې یو من غنم زکات ورکول کیږي.

**دويم ډول:**

هغه ځمکې چې په باران او یا روانو اوبو، لکه: ويالې او کاريز څخه خړوبيږي، له حاصلاتو څخه يې لسمه برخه زکات ورکول کيږي، يعنې له لس منه غنمو څخه يې يو من زکات ورکول کيږي.

نورو نفقه خورو، لکه: ښځې او اولادونو څخه صدقه ورکوي.



**فعاليتونه**

۱. د خپلې سيمې ځمکې ته په کتلو سره دا جوته کړئ چې له حاصلاتو څخه يې لسمه او که شلمه برخه زکات ورکول کيږي؟

۲. که چيرې د ځمکې حاصلات ۱۰۰ منه غنم وي، بايد څومره زکات يې ورکړل شي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.



**پوښتنې**

۱. آيا په غلو دانو او ميوو کې زکات شته؟

۲. آيا له غلو دانو او ميوو څخه د زکات ورکولو لپاره نصاب او د کال تيريدل شرط دي؟

۳. له کومو ميوو او حاصلاتو څخه لسمه برخه زکات ورکول کيږي؟

۴. له کومو حاصلاتو او ميوو څخه شلمه برخه زکات ورکول کيږي؟



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# د څارویو زکات





په اوښانو، غواګانو او پسونو کې هغه وخت زکات فرض کیږي چې نصاب یې پوره کړی وي، یو کال پرې تیر شوی وي او څریدونکي وي.

**۱. د اوښانو نصاب:**

په پنځه څرنده اوښانو کې زکات فرض کیږی، د پورته شرطونو په رعایتولو سره باید له هغو څخه یو پسه او یا یې قیمت زکات ورکړل شي.

**۲. د غواګانو او میښو نصاب:**

په دیرشو (۳۰) څریدونکو غواګانو او میښو کې یو کلن خوسی او یا یې قیمت زکات ورکول کیږي.

### ۳. د پسونو او وزو نصاب:

په څلویښتو (۴۰) څرنده پسونو او وزو کې یو پسه او یا یې قیمت زکات ورکول کېږي.

که چېرې څاروي له یاد شمیر څخه کم وي، زکات پکې نه فرض کېږي.




۱. د هغو څارویو په هکله بحث وکړئ چې په کورونو کې ساتل کېږي. آیا له هغو څارویو څخه زکات ورکول کېږي؟

۲. آیا د پسونو او مېږو په رمه کې چې شمېر یې زیات وي زکات فرض دی؟ په دې هکله خبرې وکړئ.




۱. په څارویو کې کله زکات فرض کېږي؟

۲. د اوښانو نصاب څومره دی؟

۳. د غواګانو او میښو نصاب ووایئ.

۴. د پسونو او وزو نصاب څومره دی؟




زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# د زکات مستحقین

شریعت اته ډوله خلک د زکات مستحق بللي دي، یعنې دوی ته باید زکات ورکړل شي چې لاندې یې یادونه کیږي:

(فقیران، مسکینان، عاملین، مؤلفة القلوب، غلامان او وینځې، پوروړي، مسافر او د الله ﷻ په لار کې وتلي خلک).

۱. **فقیران**: فقیران هغه اړ او محتاج خلک دي چې خپله سرمایه یې د دوی اړتیا نه پوره کوي، باید دوی ته زکات ورکړل شي.

۲. **مسکینان**: مسکینان هغه اړ او محتاج خلک دي چې هېڅ مال نه لري. د نورو خلکو مرستې ته زیاته اړتیا لري.

۳. **عاملین**: هغو خلکو ته وایې چې د حکومت له خوا د زکات راټولولو دنده پر غاړه لري، که چېرې معاش ونه لري، نو دوی ته هم له زکات څخه یوه اندازه مال ورکول کیږي.

۴. **مؤلفة القلوب**: دوی تازه مسلمان شوي خلک دي چې مسلمانان د دوی تایید ته اړتیا لري، نو اسلام ته د هڅونې په موخه له زکات څخه یوه برخه دوی ته ورکول کیږي.

۵. **غلامان او وینځې**: د غلامانو او وینځو د آزادۍ لپاره باید زکات ورکړل شي.

۶. **پوروړي**: هغه خلک چې پوروړي دي، دوی د زکات اخیستلو مستحق دي.

۷. **ابن السبیل**: ابن السبیل هغه مسافر ته ویل کیږي چې د سفر پر مهال یې خپل مال ته لاس رسی نه وي او مرستې ته اړتیا لري.

۸. **فی سبیل الله**: یعنې د الله ﷻ په لار کې وتلو خلکو ته د زکات ورکول، لکه: مجاهدین او یا د دیني علومو زده کوونکي.




۱. د زکات د مستحقو خلکو په هکله په خپلو منځو کې بحث وکړئ.

۲. یو زده کوونکی دې د مستحق نوم واخلي او بل دې له یاده هغه تعریف کړي.




۱. زکات کومو خلکو ته ورکول کیږي؟

۲. فقیر او مسکین چا ته ویل کیږي؟

۳. عامل ته زکات ورکول څه وخت جواز لري؟

۴. آیا مسافر او بندي ته زکات ورکول کیږي؟




زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# حج



حج په لغت کې قصد ته وايي او په اصطلاح کې د حج په میاشتو کې د الله ﷻ کور (کعبې) ته د ځانګړو عبادتونو په مقصد د مسلمان ورتګ ته حج ویل کیږي.

حج د اسلام پنځم رکن دی. د هجرت په نهم کال فرض شوی دی. هر توان لرونکی مسلمان باید په ټول عمر کې یو ځل حج ادا کړي.

حج زيات اجر او ثواب لري.

رسول الله ﷺ د حج په هکله فرمايي: که چېرې مسلمان د حج پر مهال له ګناهونو او شخړو څخه ځان وساتي، له حج وروسته د ده ټول ګناهونه بښل کیږي، لکه چې نوی مور زیږولی وي.

هر کال د نړۍ له ګوټ ګوټ څخه مسلمانان مکې مکرمې ته د حج لپاره راځي، د ابراهیم خلیل الله او اسماعیل ذبیح الله یاد تازه کوي، د الله ﷻ له کور څخه طواف او د صفا او مروا ترمنځ سعې کوي.

د حج لپاره مسلمانان د احرام نیت تړي، د ذې الحجې په اتمه

ورځ حاجيان مِنى ته ځي او په نهمه ورځ يې په عرفات کې لمونځونه او دعاګانې کوي، له الله ﷻ څخه د ګناهونو بښنه غواړي، د لمر له پريوتلو وروسته مزدلفې ته راځي، هلته هم عبادت کوي او په لسمه ورځ چې د لوى اختر ورځ ده، حاجيان بېرته د بيت الله په لوري ګرځي، په مِنى کې په وړو وړو کاڼو باندې عقبه جمره ولي، ورپسې قرباني کوي او د سر ويښتان خريي او يا يې کموي، وروسته غسل کوي، جامې اغوندي او د بيت الله طواف کوي.

له طواف وروسته حاجيان بېرته مِنى ته ځي او په يوولسمه او دولسمه ورځ هم په مِنى کې جمرې ولي چې په دې سره يې حج بشپړېږي.



**فعاليتونه**

۱. د حج په هکله په خپلو منځوکې بحث وکړئ.

۲. حاجيان په لاندې ځايونوکې څه ترسره کوي، بحث پرې وکړئ:

- صفا او مروه. - مِنى او عرفات. - مزدلفه.



**پوښتنې**

۱. حج په لغت او اصطلاح کې تعريف کړئ.

۲. حج کله فرض شو؟

۳. په کومه ورځ حاجيان عرفات ته ځي؟

۴. د حج په هکله پيغمبر ﷺ څه فرمايلي دي؟



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د حج په هکله لنډه مقاله وليکي.

# د حج مسایل



حج د ځانګړو شرطونو په درلودلو سره پر مسلمان فرض کېږي.

په حج کې ځيني فرض، ځيني واجب او ځيني سنت عملونه دي.

د حج د فرضيت شرطونه:

۱. **اسلام**: حج پر مسلمان فرض دی.

۲. **عقل**: حج پر عاقل مسلمان باندې فرض کېږي، په لیوني باندې حج فرض نه دی.

۳. **بلوغ**: حج پر بالغ مسلمان فرض دی، په صغير باندې حج فرض نه دی.

۴. **حريت**: حج پر آزاد مسلمان باندې فرض کېږي، په غلام او وينځې باندې فرض نه دی.

۵. **استطاعت**: حج کوونکی بايد مالي توان ولري، حج ته د تګ او بېرته راتګ او د همدې مودې لپاره د کور د مصرف لپاره پانګه ولري

او که ویې نه لري، نو حج ور باندې فرض نه دی.

۶. **د حج وخت**: شریعت د حج د ادا کولو لپاره ځانګړی وخت ټاکلی دی چې د هجري قمري کال د دولسمې میاشتې (ذی الحجې) له اتمې ورځې پیل او په دولسمه ورځ یې پای ته رسیږي.



له یادې مودې پرته حج نه کیږي، خو په نورو وختونو کې مسلمانان مکې مکرمې ته د عمرې د ادا کولو لپاره ځي.

**د حج فرضونه**:

۱. **احرام تړل**: د حج لپاره نیت کولو ته احرام ویل کیږي چې له هغه وروسته ځینې چارې پر حج کوونکي حرامیږي، لکه: د ګنډلو جامو اغوستل، ښکار کول، د ویښتانو او نوکانو غوڅول.

۲. **په عرفات درېدل**: حاجیان د ذي الحجې میاشتې په نهمه ورځ د عرفات میدان ته ځي، هلته دعاوې او لمونځونه کوي او له لمر پریوتو وروسته بېرته را ګرځي. په عرفات درېدل فرض دي.

۳. **د زیارت طواف**: د عقبې جمرې له ویشتلو وروسته د اختر په لومړۍ ورځ حاجیان خاروي ذبحه کوي او له احرام څخه فارغیږي. له دې څخه وروسته د زیارت طواف کوي چې دې طواف ته فرضي طواف هم ویل کیږي.



## فعالیتونه

۱. په یادو د حج د فرضیت شرطونه ووایئ.

۲. د حج فرضونه په نوبت سره نورو ته واوروئ.

۳. آیا غیر بالغ مسلمان حج کولای شي ؟ په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.



## پوښتنې

۱. د حج شرطونه ووایئ.

۲. استطاعت څه ته ویل کېږي؟

۳. پر عرفات درېدل په کومه ورځ ترسره کېږي؟

۴. احرام څه ته وایي؟

۵. په حج کې څو فرضه دي؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورتنۍ پوښتنې په خپلو کتابچو کې ځواب کړي.

# حیاء

حیاء هغه ښه خوی دی چې انسان نېکو کارونو ته هڅوي او له بدو کارونو څخه یې ژغوري.
حیاء لرونکی شخص له الله تعالی او خلکو څخه شرمېږي. له بدو چارو ځان ساتي او نېکې چارې تر سره کوي.
رسول الله ﷺ د حیاء په هکله داسې فرمایلي دي:
«الإِيْمَانُ بِضْعٌ وَسَبْعُونَ شُعْبَةً وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنَ الإِيْمَانِ».
ژباړه: ایمان څه د پاسه (۷۰) څانګې لري او حیاء د ایمان یوه څانګه ده.
حضرت محمد ﷺ مسلمانانو ته د حیاء لرلو سپارښتنه کړې ده.
یوه ورځ یوه صحابي خپل ورور ته د ډېرې حیاء لرلو له کبله نصحیت کاوه، پدې وخت کې حضرت محمد ﷺ تیریده او د هغه نصحیت ته یې پام شو، پیغمبر ﷺ ورته وفرمایل: پرې یې ږده! له حیاء سره تل خیر او نیمکرغي مل وي.
حیاء د ایمان نښه ده، مسلمان تل حیاء لرونکی وي او له بې حیاء چارو څخه ځان ساتي.
مسلمان تل له الله ﷻ څخه حیاء کوي، حکمونه یې پر ځای کوي، خپله ژبه له فحش او سپکو ویلو او کنځلو څخه پاکه ساتي.
موږ باید تل حیا ولرو، ځکه بې حیایي انسان ناوړو کارونو ته هڅوي.
یادونه: د زده کړې پر مهال له ښوونکي څخه له پوښتنې او ځواب ورکولو ډېره کول حیاء نه ګڼل کېږي، باید زده کوونکي د آدابو په رعایتولو سره د لوست په بهیرکې فعال ګډون ولري.
همدارنګه له خلکو سره له خبرو ډېره کول او ځان ګوښه کول هم حیا نه ګڼل کېږي.

په ژوند کې د حیاء کولو ځو بیلګې:

۱. مسلمان داسې جامې اغوندي چې ټول بدن یې پرې پټ شي، له نازکو او لنډو جامو څخه ډډه کوي.

۲. مسلمان سپکې او فحش خبرې نه کوي.

۳. مسلمان چاته کنځلې نه کوي.

۴. مسلمان څوک په بد نوم نه یادوي.

۵. مسلمان د الله تعالی او د خلکو پر وړاندې له ناروا کار څخه د حیاء له کبله ډډه کوي.



**فعالیتونه**

۱. په ژوند کې د حیا اهمیت او ګټو په هکله په نوبت سره خبرې وکړئ.

۲. آیا په زده کړې کې له پوښتنې او ځواب ورکولو څخه ډډه کول حیا بلل کیږي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.

۳. په جامو اغوستلو کې څرنګه حیاء په پام کې نیول په کار دي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.



**پوښتنې**

۱. حیاء څه ته ویل کیږي ؟

۲. رسول الله ﷺ د حیاء په هکله څه فرمایلي دي؟

۳. آیا په زده کړه کې له پوښتنو او ځواب ورکولو څخه ډډه کول حیاء ګڼل کیږي؟

۴. مسلمان له کومو خبرو څخه ځان ساتي؟



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې د کورنۍ غړو په مرسته د حیاء په هکله لنډه مقاله ولیکي.

# تواضع

د ژوند په ټولو چارو کې حق منل او له خلکو سره په نرمۍ او درناوي چلند کولو ته تواضع ويل کيږي.

د اسلام دين موږ تواضع ته را بللي يو، رسول الله ﷺ فرمايلي دي:

«مَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ»

ژباړه: هېڅوک د الله تعالی لپاره په درناوي او نرمۍ سره چلند نه غوره کوي، مګر الله تعالی يې اوچتوي.

په بل حديث کې رسول الله ﷺ داسې فرمايلي دي: الله ﷻ ما ته حکم کړی چې له خلکو سره په تواضع او احترام چلند کوئ، تر څو خلک يو پر بل ځان غوره ونه ګڼي او يو پر بل ظلم او تيری ونه کړي.

موږ بايد له خلکو سره په خوږه ژبه چلند وکړو، په هر وخت کې حق ته غاړه کېږدو او هېڅ وخت له حق نه سرغړونه ونه کړو.

د ښوونکو، ټولګيوالو او ګاونډيانو احترام وکړو، د مشرانو نصيحت واورو او عمل پرې وکړو.

د تواضع ضد کبر او لويي ده، کبر لويه ګناه ده.

حضرت محمد ﷺ کبر داسې بيان کړی: کبر د حق نه منل او خلکو ته سپکاوی کول دي.

د ښکلو او پاکو جامو اغوستل کبر نه ګڼل کېږي، بلکې اسلام موږ ته د پاکۍ او نظافت امر کوي.

د تواضع یوه نښه دا ده چې مسلمان په سلام اچولو کې لومړیتوب وکړي، بل ته د سلام اچولو منتظر پاتې نشي.




١. د ښوونکي په مرسته د تواضع څو بیلګې بیان کړئ.
٢. له مور او پلار سره څنګه رویه کول په کار دي؟ په دې هکله خبرې وکړئ.




١. تواضع څه ته وایي؟ معنا یې کړئ.
٢. د تواضع په هکله پیغمبر ﷺ څه فرمایلي دي؟
٣. د تواضع ضد څه شی دی؟
۴. کبر او لویي څه ته وایي؟
۵. آیا ښکلې او پاکې جامې اغوستل کبر ګڼل کېږي؟




زده کوونکي دې د لوست حدیثونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# صله رحمي

د خپلولۍ پالنه، خپلوانو سره ښېګڼه، هغوی ته د خپل توان په اندازه ګټه او خیر رسول، په ستونزو او غم کې ورسره مرسته کولو ته صله رحمي وايي.

د اسلام دین موږ ته په صله رحمۍ امر کوي، له خپلوانو سره د خپلوۍ پالنه پر هر مسلمان واجب ده او قطع کول یې لویه ګناه ده.

حضرت محمد ﷺ د صله رحمۍ په هکله داسې فرمایلي دي: که څوک غواړي چې په روزۍ او عمر کې یې برکت پیدا شي، له خپلوانو سره دې صله رحمي وکړي.

موږ او پلار سره صله رحمي له هر خپلوان څخه لومړیتوب لري.

**د صله رحمۍ څو بیلګې:**

۱. خپلوانو سره تګ او راتګ، له ژوند څخه یې ځان خبرول او د هغوی د خوشحالولو هڅه کول،

۲. د اړتیا په وخت کې هغوی سره هر ډول روا مرسته کول،

۳. خپلوانو ته نصحیت او سمه لاره ښوول،

۴. د خپلوانو په منځ کې د اتفاق او یووالي هڅه کول،

۵. هغوی سره ښه چلند کول او له بد چلند څخه ډډه کول،

۶. د خپلوانو احترام او عزت کول، په مینه او محبت سره هغوی ته ښه راغلاست ویل.

**د صله رحمۍ له ګټو څخه:**

۱. د صله رحمۍ په پاللو سره مسلمان د الله ﷻ رضا ترلاسه کوي.

۲. د صله رحمۍ له کبله د خپلوانو په منځ کې مینه او محبت زیاتیږي.

۳. صله رحمي په خلکو کې خوشحالي را منځ ته کوي.

۴. د صله رحمۍ په پاللو سره د مسلمانانو ستونزې او غمونه کمیږي.

۵. صله رحمي د دښمنۍ او کینې مخه نیسي.



**فعالیتونه**

۱. د صله رحمۍ په هکله په خپلو منځو کې مباحثه وکړئ.

۲. د خپلوانو سره صله رحمي څنګه کېدای شي؟ په دې هکله د ښوونکي معلومات له ځان سره شریک کړئ.




۱. صله رحمي څه ته وايي؟

۲. حضرت محمد ﷺ د صله رحمۍ په هکله څه فرمايلي دي؟

۳. د صله رحمۍ څو بیلګې ووايئ.

۴. د صله رحمۍ ګټې ووايئ.




زده کوونکي دې د لوست حدیث شریف په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# رښتیا ویل

رښتیا ویل د مسلمان ښه ده. الله تعالی موږ ته د رښتیا ویلو لار ښوونه کوي او فرمايي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ﴾
(التوبة ۱۱۹ أیت)

ژباړه: ای مؤمنانو! له الله نه وويرېږئ او له رښتينو خلکو سره ملګري شئ.

رسول الله ﷺ فرمايي: تل رښتيا ووايئ، رښتيا ويل مسلمان له هلاکت څخه ژغوري. متفق عليه

موږ بايد په خپلو وينااوو او عملونو کې رښتيني واوسو.

کله چې خبرې کوو، تل بايد رښتيا ووايو، له چا سره چې وعده کوو بايد سرته يې ورسوو.

له خلکو سره زموږ اړيکې بايد صادقانه وي، موږ مور او پلار ته تل رښتيا وايو، په ټولګي کې خپلو ټولګيوالو سره په رښتيا چلند کوو.

**د رښتيا ويلو ګټې:**

۱. په رښتيا ويلو سره الله جَلَّ جَلَالُهُ رضا کيږي.

۲. رښتيا ويل مسلمان نيکو کارونو ته هڅوي، له بدو کارونو نه يې ژغوري.

۳. په رښتيني انسان باندې خلک باور کوي.

۴. په رښتيا ويلو سره د انسان عزت زياتيږي .

۵. رښتيا ويل د نجات او خلاصون وسيله ده.



## فعالیتونه

۱. د رښتیا ویلو په هکله په خپلو منځو کې بحث وکړئ.

۲. دروغ ویل څه زیانونه لري ؟ بحث پرې وکړئ.



## پوښتنې

۱. الله تعالی موږ ته د رښتیا ویلو په هکله څه لارښوونه کوي ؟

۲. رسول الله ﷺ د رښتیا ویلو په هکله څه فرمایلي دي؟

۳. موږ باید په وینا او عمل کې څنګه واوسو؟

۴. رښتیا ویل څه ګټه لري؟ بیان یې کړئ .

ب: لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱. موږ باید په خپلو ویناوو او عملونو کې .... واوسو.

۲. رښتیا ویلو سره د انسان ...... زیاتیږي .

۳. - ....... ویل د مسلمان نښه ده.

۴. په رښتیا ویلو سره الله ﷻ ...... کیږي .



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مور او پلار د حقونو په هکله لنډه مقاله ولیکي.

# د مور او پلار اطاعت

د مور او پلار اطاعت پر هر مسلمان فرض دی.

موږ باید په روا کارونو کې د مور او پلار خبره ومنو.

د الله ﷻ رضا د مور او پلار په خوښۍ کې ده.

الله تعالی موږ ته له مور او پلار سره د ښېګڼې امر کړی دی: ﴿وَقَضَى رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا﴾ د الاسراء سورت ۲۳ أيت.

ژباړه: او ستا رب فیصله کړې چې یوازې د یو الله ﷻ عبادت وکړئ او له مور او پلار سره احسان وکړئ.

له مور او پلار سره ښېګڼه د هغوی پیروي کول دي.

موږ له مور او پلار سره په خوږه او نرمه ژبه خبرې کوو، غوښتنو ته یې په درناوي ځواب وایو، د ژوند په چارو کې ور سره مرسته کوو.

تل د مور او پلار احترام کوو.

موږ مور او پلار ته د خیر دعا کوو.

**حکایت:**

یوه ورځ یو صحابي حضرت محمد ﷺ ته له خپل پلار سره راغی، پیغمبر ﷺ ترې پوښتنه وکړه: دا سپین ږیری څوک دی؟ هغه وویل: زما پلار دی. حضرت محمد ﷺ ورته وفرمایل: له هغه نه مخکې مه ځه، مخکې ترې مه کېنه، نوم ورته مه اخله او داسې کار مه کوه چې خلک هغه ته کنځلې وکړي. رواه الطبراني في الاوسط



## فعالیتونه

۱. د مور او پلار د اطاعت په هکله په خپلو منځو کې بحث وکړئ .

۲. د مور او پلار په وړاندې کوم آداب په پام کې نیول په کار دي؟ پدې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

۳. د مور او پلار په وړاندې (اف) کلمه ویل روا نه دي. بحث پرې وکړئ.



## پوښتنې

لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړئ:

۱. د مور او پلار اطاعت پر هر مسلمان ..... دی.

۲. مور باید په روا کارونو کې د مور او پلار..... وکړو .

۳. د الله ﷻ رضا د مور او پلار په ...... کې ده .

لاندې پوښتنې ځواب کړئ :

۱. الله ﷻ مور ته د مور او پلار په هکله څه لارښوونه کړې ده ؟

۲. له مور او پلار سره ښیګڼه ښنګه کېدای شي؟

۳. رسول الله ﷺ د پلار د حقونو په هکله زوی ته څه لارښوونه کړې ده؟

۴. آیا تاسې مور او پلار ته د خیر دعا کوئ ؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مور او پلار د حقونو په هکله لنډه مقاله ولیکي.

# اسراف

له اړتیا پرته، بې ځایه د روا شیانو اضافه استعمال ته اسراف ویل کیږي.

اسراف په اسلام کې حرام او ګناه ده.

الله تعالی موږ له اسراف څخه منع کړي یو: ﴿...وَلا تُسْرِفُوا إِنَّهُ لا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ﴾ الاعراف سورت: ۳۱ أیت.

ژباړه: او تاسې اسراف مه کوئ، پرته له شکه الله تعالی اسراف کوونکي نه خوښوي.

رسول الله ﷺ فرمایي: ((كُلُوا وَاشْرَبُوا وَالْبَسُوا وَتَصَدَّقُوا، فِي غَيْرِ إِسْرَافٍ وَلاَ مَخِيلَةٍ)). رواه البخاري.

ژباړه: خوراک او څښاک کوئ، جامې اغوندئ او صدقه ورکوئ، خو اسراف او کبر مه کوئ.

پوه انسان، تل له اسراف څخه ډډه کوي.

موږ باید د ژوند په ټولو چارو کې له اسراف نه ځان وساتو.

**د اسراف څو مثالونه:**

- له اړتیا پرته د اوبو زیات استعمال، آن تر دې چې په اوداسه کې هم اسراف بلل کیږي.
- له اندازې زیات خواړه تیارول او خوړل یې اسراف دی.
- له اړتیا پرته ډېرې جامې او لباس اخیستل، اسراف بلل کیږي.

- له اړتیا پرته د برېښنا کارول اسراف بلل کېږي.

**د اسراف له زیانونو څخه:**

- اسراف شیطاني عمل دی، کول یې ګناه ده.
- اسراف بې ځایه د مال ضایع کول دي.
- اسراف انسان په ګناهونو کې ښکیل کوي.
- اسراف مسلمان له عبادت او اطاعت څخه غافل کوي.



**فعالیتونه**

۱. د ښوونکي په مرسته په چاپېریال کې د اسراف څو بېلګې ووایئ.
۲. آیا د اسراف او سخاوت تر منځ توپیر شته؟ بحث پرې وکړئ.
۳. لاندې چارې په ګوته کړئ چې روا او که ناروا دي:
(بخل، مېلمه پالنه، سخاوت، پاسلنه)



**پوښتنې**

۱. اسراف څه ته ویل کېږي؟
۲. اسراف ولې ګناه ده ؟
۳. الله تعالی موږ ته د اسراف په هکله څه لارښوونه کړې ده؟
۴. د اسراف څو مثالونه ووایئ.
۵. د اسراف څو زیانونه ووایئ.



**کورنۍ دنده**

زده کوونکي دې له لوست څخه په ګټه اخیستنې سره د اسراف په هکله یوه مقاله ولیکي.

# حجاب




الله تعالی مسلمانو ښځو ته د حجاب رعایتولو امر کوي.

د ښځې بدن او ښایست پټولو ته حجاب وايي.

مسلمانه ښځه باید له نامحرمو څخه پرده وکړي.

حجاب د مسلمانې ښځې د عزت ساتنه کوي.

د مسلمانې ښځې لباس باید لاندې ځانګړتیاوې ولري:

١. جامې باید نرۍ نه وي چې بدن ترې ښکاره شي.

٢. جامې باید پراخه وي، تنګې نه وي چې د بدن غړي پکې معلوم شي.

٣. جامې یې باید د نارینه وو په څېر نه وي.

۴. جامې باید د کافرانو له جامو سره مشابهت ونه لري.

۵. ټول بدن باید پکې پټ شي.

**د حجاب ګټې:**

- د حجاب په رعایتولو د الله تعالی امر پر ځای کېږي.
- حجاب پر ښځه د تیري مخه نیسي.
- حجاب د پاکې او اصیلې ښځې نښه ده.
- خلک د حجاب لرونکې ښځې احترام کوي.

### فعالیتونه

۱. د حجاب په هکله په خپلو منځو کې بحث وکړئ.
۲. حجاب د پاکې او اصیلې ښځې نښه ده. په دې هکله په خپلو منځو کې خبرې وکړئ.

### پوښتنې

۱. الله تعالی مسلمانو ښځو ته د څه امر کړی دی؟
۲. حجاب څه ته وایي؟
۳. د مسلمانې ښځې لباس باید څه ځانګړتیاوې ولري؟
۴. حجاب کول ښځې ته څه ګټه لري؟

### کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د یاد لوست ګټې په خپلو کتابچو کې ولیکي او په راتلوونکي ورځ کې دې په ټولګي کې ولولي.

# د صدقې فضایل



د الله تعالی مرسته له هغه بنده سره مل ده چې له نورو خلکو سره مرسته کوي.

مسلمان له اړو خلکو سره مرسته خپل مسؤولیت ګڼي.

له خپل مال څخه مسکینانو او فقیرانو ته صدقه ورکوي.

مسلمان د توان او قدرت په اندازه صدقه ورکوي.

صدقه ورکول مسلمان له دوزخ څخه ژغوري.

رسول الله ﷺ داسې فرمايي: «اتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ» . رواه البخاري.

ژباړه: په صدقې ورکولو سره ځان له دوزخ څخه وژغورئ، که څه هم د خرما یوه ټوټه وي.

لومړی باید غریبو او اړو خپلوانو ته صدقه ورکړل شي، په دې کې اجر او ثواب زیات دی، رسول الله ﷺ فرمايي: «لَهُمَا أَجْرَانِ أَجْرُ الْقَرَابَةِ وَأَجْرُ الصَّدَقَةِ». رواه البخاري.

ژباړه: د دوی لپاره دوه اجره دي، یو یې د خپلوۍ د پالنې او بل یې د صدقې ورکولو.

## د صدقې ورکولو ګټې:

- په صدقې ورکولو الله ﷻ له مسلمان څخه راضي کیږي.
- په صدقې ورکولو سره مسلمان له ډېرو ستونزو او مصیبتونو څخه نجات مومي.
- په صدقې ورکولو د مسلمانانو په منځ کې مینه او محبت زیاتیږي.
- الله تعالی د صدقې ورکوونکي په مال او عمر کې برکت اچوي.



فعالیت

۱. د خپلو مرستو څو بیلګې چې له غریبانو او خپلوانو سره مو کړې دي، په ټولګي کې بیان کړئ.

۲. صدقه او خیرات باید په پټه ورکړل شي. په دې هکله خبرې وکړئ.



پوښتنې

لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

۱. د الله تعالی مرسته له چا سره مل وي؟

۲. رسول الله ﷺ د صدقې په هکله مونږ ته څه لارښوونه کړې ده؟

۳. لومړی باید چاته صدقه او خیرات ورکړل شي؟

۴. صدقه ورکول مسلمان ته څه ګټه رسوي؟

ب: لاندې تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. په صدقې ورکولو سره ځان له......... وژغورئ.

۲. لوړی باید غریبو او اړو ......... ته صدقه ورکړل شي .

۳. په صدقې ورکولو سره له مسلمان څخه الله ﷻ ......... کیږي.

۴. الله تعالی د صدقې ورکوونکي په مال او عمر کې......... اچوي.




زده کوونکي دې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي.